# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦٧٩ ګڼه / دوشنبه ۱۱ شعبان‌المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د سلواغې ۲۲مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۱۰ فبروري ۲۰۲٥ میلادي


د کورنیو چارو وزارت:

## افغانستان بېساري تاریخي امنیت تجربه کوي



د کورنیو چارو وزارت ویاند مفتي عبدالمتین قانع سیمه کې د امنیتي کوانښونو په اړه د ملکرو ملتونو امنیت شورا ځانګړې غونډې ته په غبرګون کې ویلي، له افغانستان څخه نورو هېوادونو ته هیڅ ډول ګواښ نشته. ښاغلي قانع د یو شمېر هېوادونو ... ۳مخ

## د ایران مذهبي مشر له افغانستان سره پر بشپړې ښکېلتیا ټینګار کړی



په مزار شریف کې د تهران سرکونسل ویلي، چې د ایران مذهبي مشر علي خامنه یي له افغانستان سره د اعظمي تعامل امر کړی دی.

د تسنیم خبري اژانس د راپور له مخې، علي‌رضا احمدي په یوه خبري کنفرانس کې ویلي چې ایران، د علي خامنه‌یی د فرمان سره سم، له افغانستان سره په اعظمي تعامل ټینګار کوي.

د ایراني رسنیو د راپورونو له مخې، نوموړي ویلي چې د ایران مشر باور لري چې د سیمې ستونزې باید د سیمې د هېوادونو له لوري هوارې شي.

د ایران د مذهبي مشر له افغانستان سره د اعظمي ښکېلتیا ... ۳مخ

## کندز کې د یو نیم میلیارد افغانیو په ارزښت سوداګریز ښارګوټی جوړېږي

کندوز کې د سپین‌زر امارتي شرکت په ۳٥ جریبه ځمکه کې د یو نیم میلیارده افغانیو په ارزښت د سوداګریز او ودانیز ښارګوټي د جوړولو چارې پیل شوې.

په دې اړه جوړې شوې غونډه کې د سپین‌زر امارتي شرکت مسئولینو سربېره د ملکي او نظامي ادارو مسئولینو، قومي مخورو، ملي پانګوالو، سوداګرو، علمای کرامو، ځوانانو او خبریالانو ګډون کړی و.

د غونډې په پیل کې د سپین‌زر امارتي شرکت سوداګریز رییس مولوي عبدالغفور شهیدزي ویلي؛ دغه سوداګریز او ودانیز ښارګوټي کې ۸ شپږ پوړیزه ... ۳مخ



د حج او اوقافو وزارت:

## له کورنیو هوایي شرکتونو سره د حاجیانو د لېږد رالېږد تړون لاسلیک شو

د ارشاد، حج او اوقافو وزیر شیخ الحدیث نورمحمد ثاقب په خپل کاري دفتر کې له آریانا افغان او کام ایر هوایي شرکتونو له مسئولینوسره د ۱٤٤٦هـ ق. کال سعودي عربستان ته د (۳۰) زرو حاجیانو د لېږد او رالېږد تړون لاسلیک کړ.

دغه غونډه د ارشاد، حج او اوقافو د وزیر سربېره د دې وزارت د مقام مرستیال، مرکزي ریاستونو رییسانو او علماوو د آریانا افغان هوایي شرکت رییس مولوي عبدالولي صدیقي، د کام ایر هوایي شرکت او د یادو شرکتونو تخنیکي او مسلکي کارمندانو ګډون کړی و. په یاده غونډه کې د ارشاد، حج او اوقافو وزیر وویل: الحمدلله ... ۳مخ

## مبارزه با گرانفروشان ادویه؛ شرکت‌های متخلف در ننگرهار مسدود گردید

وزارت صحت عامه از بسته شدن شماری از شرکت‌های ادویه فروشی در ولایت ننگرهار خبر می‌دهد.



دلیل بسته شدن شماری از شرکت‌های ادویه فروشی در ولایت ننگرهار را وزارت صحت عامه قیمت‌فروشی دوا و نقض قوانین عنوان کرده است.

به گفته این وزارت شرکت‌های متذکره در ناحیه دوم شهر جلال‌آباد مرکز ولایت ننگرهار فعالیت داشتند.

در خبرنامه آمده که شرکت‌های متخلف و گران‌فروش در نتیجه نظارت و بررسی مؤظفین ریاست صحت عامه ولایت ... ص۳

## جوزجان کې د ۲ کورنیو ترمنځ روغه جوړه وشوه



د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو وزارت وایي؛ د جوزجان ولایت د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو رییس مولوي غلام نبي صمیم په مشرۍ د دیني عالمانو، قومي مشرانو او ځایي خلکو په همکارۍ په یاد ولایت کې د دوو کورنیو ترمنځ هغه لس کلنه دُښمني پر دوستۍ بدله شوه، چې یو کس پکې وژل شوی او د ګڼو مالي زیانونو ترڅنګ یې ژورو اختلافاتو ژوند تریخ کړی و. د دغه روغې جوړې پرمهال مسئولینو په خپلو خبرو کې د اتفاق، یووالي او یو بل منلو په دنیاوي او اخروي ګټو بحث وکړ، ښکېل اړخونه یې سولې ته راضي کړل او ترمنځ یې د منصفانه پرېکړې له ... ۳مخ

## فراه کې ترافیکي پېښې ۸ تنو ته مرګ ژوبله اړولې



د فراه په شیخ ابونصر فراهي بندر کې د یوې ترافیکي پېښې له امله د دین محمد او محمد سرور په نوم دوه هېوادوال مړه او ٦ تنه ... ۳مخ

### په‌سویلي اسیا کې د قدرت بدلون!

۲مخ

### د نظام ساتنه د شریعت د تطبیق وسیله

۲مخ

## سرمقاله



## د مغرضو رسنیو مذبوحانه تبلیغات بې ګټې دي!

نړیوال به ډېر ژر په افغانستان کې هغه واقعیتونه درک کړي چې د افغان مؤمن او مجاهد ملت غوښتنه ده، دملت دغه غوښتنې چې تېر فاسد نظام د پلازمېنې په چاپېریال کې نه شوې عملي کولای. اسلامي امارت په ټول افغانستان کې عملي کړي، د بېلګې په توګه کابل د غلو په مرکز بدل شوی و او هېچا په خپل جیب کې په خپلو روپیو پلورل او اخیستل نشو کولای، په خپل موبایل ګرځولو ډاډه نه وچې د ښار په منځ کې به یې موټر سایکل سپروله لاسه واخیست او سړی به حیران پاتی شو. اوس دغلو کچه صفر ته راټیټه شوې د زورواکۍ لړۍ پای ته ورسیده په داسې حال کې چې په تېر نظام کې یو والی د جمهور رئیس فرمان ته غاړه نه ایښوده ، نه پرې د داخلي ځواکونو زور رسیده اونه هم دامریکایي او اروپایي متحدینو.

په ټول هېواد کې ډاډمن امنیت تامین شوی هر هېواد وال کولای شي د هېواد هر ولایت او هرګوټ ته ډاډه سفر وکړي، له بده مرغه ځینې ستونزې شته چې د تېر نظام او نړیوال استکبار د خپلو شومو موخو او اهدافو د لاسته راوړنې په موخه په افغانانو تحمیل کړې، لکه د ځوانانو بهرنیو هېوادونو ته په جلب او د اسلامي امارت په خلاف پراخ رسنیز تبلیغات چې له واقعیتونو سره هیڅ اړخ نه لګوي په لار اچولي خو دغه مذبوهانه هلې ځلې به هېڅ پایله ونه لري او ډېر ژر به د نړۍ هېوادونه او ملتونه د افغانستان واقعیتونه درک کړي. اسلامي امارت ټول هغه شرایط پوره کړي چې نړیوال یې د رسمیت پېژندنې معیار بولي، په ټول هېواد حاکمیت، ډاډمن امنیت د جنګونو پای، د امنیت تامین او داسې نور. افغانستان هغه هېواد نه دی چې اقتصاد یې په نورو هېوادونو پورې تړلی وي، بلکې افغانستان د اسیا د زړه او تاج حیثیت لري که نړیوال استعماري او استکباري طاقتونه زموږ په هېواد کې له لاس وهنو لاس واخلي، موږ کولای شو ډېر ژر خپل هېواد د نړۍ له پرمختللی کاروان سره د سیالۍ جوګه کړو. افغانستان د منځنۍ اسیا او اروپا ... ۳مخ

## بهره‌برداری ساختمان یک مکتب در دایکندی



وزارت معارف می‌گوید، کار ساخت ساختمان یک مکتب در ولایت دایکندی به ارزش ٥ میلیون و ۴۰۰ هزار افغانی تکمیل و به بهره‌برداری سپرده شده است.

به گفته وزارت معارف، تعمیر مکتب «جنگان کلان» در مربوطات ولسوالی اشترلی ولایت دایکندی ساخته شده است.

در خبرنامه آمده که این مکتب در نتیجه کمک، سهم‌گیری و اشتراک گسترده باشندگان ولسوالی اشترلی اعمار شده است.

با تکمیل کار این مکتب مشکلات صدها دانش‌آموز از رهگذر داشتن مکان مصوون آموزشی حل شده است.

گفتنی است که روند ساخت تعمیر به مکاتب در ولایت‌های مختلف کشور در نتیجه کمک نهادهای امارتی، غیرامارتی و مردمی جریان دارد.

## از غصب ۱۲ هزار جریب زمین امارتی در کندهار جلوگیری گردید



مقام‌های محلی ولایت کندهار می‌گویند، مسئولین ریاست زراعت، آبیاری و مالداری این ولایت از غصب ۱۲ هزار جریب زمین امارتی جلوگیری کرده‌اند.

ریاست اطلاعات و فرهنگ ولایت کندهار با نشر خبرنامه‌ای این مطلب را به نقل از حنیف حقمل سخنگوی ریاست زراعت، آبیاری و مالداری این ولایت بیان کرده است.

بربنیاد خبرنامه، ۱۲ هزار جریب زمین امارتی در طول ... ص۳

# د نظام ساتنه د شریعت د تطبیق وسیله

**خالد تسل**

نظام د شریعت په تطبیق کې د ملا د تېر حیثیت لري. که چېرې یو څوک غواړي په یو هېواد کې د نظام د ملاتړ پرته اسلامي احکام تطبیق کړي ، نو دا کار ناشونی ځکه دی چې اسلام کې ځینې داسې احکام شته چې په پوره کولو او تعمیل کې یې واک او ځواک دواړه زیات اړین دي ، د بېلګې په توګه یو کس بل کس ناحقه په وحشت سره ووژني، بیا یې قضیه قاضي ته راجع شي، قاضي پرېکړه وکړي چې یاد مجرم ظالم کس دې قصاص شي. په دغه وخت کې که چېرې یو ځواکمن نظام نه وي، نو د دغه الهي حکم تطبیق به له عمل پرته پاتې شي. که چېرې مجرم کس بیا هم پرته د نظام له ملاتړ ووژل شي، د دې پر ځای چې الاهي حکم عملي شي برعکس به دوو قومونه ته یوه تاریخي بدۍ په میراث پاتې شي او له دغه بدۍ به بېګناه ولسونه ځورېږي او له یو قتل څخه به کیسه قتلونو ته ورېده شي. بناءً معلومه شوه، چې نظام د الاهي احکام په تطبیق کې رغنده رول لري. د نبي کریم صلی الله علیه وسلم له رحلت وروسته چې کله ابوبکر صدیق رضي الله عنه خلیفه شو نو ځینو کسانو چې د زکوة له ورکړې انکار کولو هغه رضي الله عنه د زکوة په منکرینو باندې وسله د جهاد کولو لپاره را اوچته کړه او ویې ویل : ابوبکر به ژوندی وي او د اسلام د یو حکم عمل به خلک قصداً پرېږدي،نو دلته هم معلومه شوه چې نظام د شریعت د تعمیل لپاره څومره اړین دی. دغه شان هغه وخت کله چې د امارت ظهور نه و شوی داخلي جنګونه ول د ملوک الطوایفي راج و نو که چېرې په هغه وخت کې د شریعت د احکامو د تطبیق خبره وکړو ، نو هلته هم عمل ځکه ناشوني وو چې موږ له یو مقتدر نظام څخه برخمن نه وو. د الاهي احکامو له تطبیق وروسته زیانمنې کورنۍ د دې پر ځای چې د مقابل لوري سره دښمني وپالي برعکس پر ور اوښتی زیان صبر کوي. د یادونې وړ ده، چې دلته له نظام څخه اسلامي نظام مراد دی. دا خبره خو جوته ده چې هر سیکولر، غربي ، شرقي، استعماري او اشغالي نظام خپلې شومې موخې له ځان سره لري،هغوی ته د اسلامي احکامو د تعمیل پر ځای د خپل فکر تپل او د خپلو بادارانو خوشحاله کول یو مهم کار دی،نو هغه نظامونه د شریعت د تطبیق لپاره وسیله نه بلکې د شریعت د تخریب لپاره وسیله ده، هغوی عامه ذهنیتونه د اسلام ضد کړنو ته جلبوي او اسلام خلکو ته د تروریزم په نامه تشریح کوي. بناءً الحمد لله موږ افغانان له زبر ځواک پرځولو وروسته د الله جل جلاله په نصرت په خپل هېواد کې یو مقتدر، ځواکمن او خپلواک اسلامي نظام لرو ، چې د شریعت تطبیق یې یو مهم اصل دی، نو موږ او تاسو افغانانو ته په کار ده ،چې د نظام د استحکام لپاره زیاتې هلې ـ ځلې وکړو تر څو خپلواکي مو اوږد مهاله شي او د شریعت مطهره د احکامو تطبیق ته مو زمینه برابره کړې وي.

**و لله الحمد**

# نازنین ته!

**عرفان الله شرفزوی**

(نازنین هغه پېغله وه، چې لس نیم کاله وړاندې یې باګرام ولسوالۍ کې پر امریکایي ځواکونو برید کې یو امریکایي پوځي وواژه. هغې ته!)

نازنین! ستا به ځکه نه یادېږي، چې دا پېښه ستا له کلي سلګونه میله لرې د تورې بوړې په غرونو کې رامنځ ته شوې؛ هلته چې زما کلی دی.

**نازنین!**

کیسه درته کوم؛ شپه دوه برخې تېره شوې وه او سهار ته یوازې څو ساعتونه پاتې وو، چې د تورې بوړې په غرونو تندرونه راپرېوتل.

اوه! یو به ځمکې ته نه و رسېدلی، چې په اسمان کې به د نورو رڼاګانې ولیدل شوې او شېبه وروسته به ځمکه وښورېده، یو درونږ اواز به پورته شو او هغه ځای به لمبو غېږه کې واخیست.

ماشومان په خپلو میندو پسې بې اختیاره ځغستل، سپین ږیري به ګام په ګام پرځېدل، ځوانانو هر طرف منډې وهلې او ستا په څېر پېغلو به په وارخطایۍ کله ماشومان ځغلول او کله سپین ږیري له ځمکې پورته کول.

**نازنین!**

وبه یې منې، چې په دې شپه تر ۵۰۰ زیات تندرونه را پرېوتل او زرګونو انسانانو هره خوا وځغستل.

**نازنین!**

یوازې خبره په ځغستلو تمامه نشوه، بلکې د دَور خان کور یې له خاورو سره داسې خاورې کړ، چې بې له ده او پلاره یې، نور د کور ټول په خوب ویده ماشومان او د دَور خان ځوانه ښځه ټوټه ټوټه کړل.

**نازنین!**

پوهېږې، چې تندرونه چا راوغورځول؟ نه، نه ته نه یې خبره، ځکه دا پېښه ستا له کلي سلګونه میله لرې د تورې بوړې په غرونو کې رامنځ ته شوې؛ هلته چې زما کلی دی.

**نازنین!**

د تندرونو په غورځوونکو کې یوه امریکایي پېغله هم وه، چې د چورلکې په هر تندر یې د سلګونو ماشومانو، ښځو او سپین ږیرو له خولو د هیبت چیغې پورته کولې او د دَورخان کورنۍ یې له خاورو سره خاورې کړه.

دَورخان به ډېر کله د څادر په پیڅکه اوښکې پاکې کړې، خو بېرته به یې پر مخ دانه دانه راپرېوتې؛ له لسو کلونو کمکي شپږ ماشومان یې هره شېبه مخ ته ولاړ وو او له ده یې روپۍ غوښتې، خو ده به چې جیب ته لاس کړ، نو د پورې غونډۍ په سر به باد د قبرونو جنډې په زوره زوره ورپولې او غږ به یې د دَورخان له سترګو رڼې اوښکې پر مخ ماتې کړې.

**نازنین!**

ستا به ځکه نه یادېږي، چې دا پېښه ستا له کلي سلګونه میله لرې د تورې بوړې په غرونو کې رامنځ ته شوه؛ هلته چې زما کلی دی.



**نازنین!**

ته پوهېږې د دَورخان کمکي ماشومان او ځوانه ښځه یې چې شهیدان کړل؛ له هغې پېغلې سره څه وشول؟ هغې چورلکه ستا د کلي تر څنګ باګرام هوایي ډګر کې کېنوله او ډېرو نورو له چورلکې له راکوزېدو سره سم په ویاړ په غېږو کې ونیوه او په سبا یې په ویاړ مېډال ځکه ورکړل شو، چې په توره بوړه یې بمونه ورولي وو او د دَورخان کورنۍ یې له خاورو سره خاورې کړې وه، خو کله چې تا پر امریکایي پوځي ټوپک ونیو...

**نازنین!**

ته پوهېږې، چې کومه ورځ تا په خپل کلي کې پر امریکایي ځواکونو د ټوپک شپېلۍ ور واړوله، نو ستا د دې کار څرمره هرکلی وشو؟

نه، نه ته نه پوهېږې؛ ځکه ستا د ټوپک له ډز سره ستا په بدن هم د مرمیو باران را ووریږد او تا د میوند د ملالې په څېر د خپلې کارنامې پایله ونه لیده. ښه شوه، چې ودې نه لیده؛ ځکه موږ چې ولیده، نو له سترګو مو اوښکې روانې وې او ژړل مو.

**نازنین!**

پوهېږې، چې ولې مو ژړل؟ نه، نه ته نه پوهېږې، ځکه ته تر خاورو لاندې یې؛ نه غلط شوم ته جنت ته لاړه یې او موږ دې دوزخیانو ته پرېښې یو. هو هغو دوزخیانو ته، چې ستا دا ستره کارنامه یې لیدلې وه، خو د میوند د ملالې د کارنامې په څېر یې بدرګه نه کړه.

هاغه دی زه یې وینم، چې شاعر ستا له کارنامې خبر دی، خو تا نه ستایي؛ ځکه تا د هېواد د خپلواکۍ او ناموس ساتنې ګام اخیستی و، خو ها شاعر کوښښ کوي، چې دا پیغامونه په سرو شونډو او شنو خالونو واړوي او نور څوک د ټوپک په ژبه خبرې ونه کړي.

هاغلته یو لیکوال هم په همدې هڅه کې دی او ستا د کارنامې په اوربدو یې تنده تروه شوه، ځکه دې لیکوال دا څو کاله هڅه وکړه، چې ټوپک وغندي او د غلا.مۍ تعبیر په خپلواکۍ واړوي.

**نازنین!**

هاغه دوزخي وینې؟ نه، نه ته یې ځکه نه وینې، چې ته له خاورو لاندې یې؛ نه غلط شوم ته جنت ته لاړې او موږ دې دوزخیانو ته پرېښودو. هغه ستا کارنامه د هېواد او ناموس ساتنه نه بولي، بلکې تا فقط یوه احساساتي پېغله بولي، چې غولېدلې یې.

**نازنین!**

وی ته خو په ژړا شوې، اوه! نازنین ته خو ژاړې؛ ما خو تاته غولېدلې پېغله نه دي ویلې، بلکې د دوزخیانو د خولې خبره مې درته وکړه؛ د هغو دوزخیانو خبره، چې په خپله غولېدلي او اوس د خپلې غولېدنې د ناسمې توجیه لپاره ستا په څېر د خپلواکۍ اتلانو ته غولېدلي وایي.

**نازنین!**

زه تا د خپلواکۍ اتله ګڼم، زه تا د ناموس ساتنې اتله ګڼم، زه تا د میوند د ملالې خور ګڼم، زه تا د هېواد په تاریخ کې ویاړمنه پېغله ګڼم، زه تا تر زرګونو ځوانانو پیاوړې او آغلې ګڼم، زه تا یوازې د محمدا جان اکا لور نه، بلکې د اُمت لور ګڼم.

اوه ته مه ژاړه! موږ ستا لاره نه پرېږدو، موږ ستا ویاړ نه هېروو، موږ به د خپل هېواد د تاریخ په پاڼو کې پر تا ویاړو، موږ ستا ارمان پوره کړی او دا خاوره مو له یرغلګرو ازاده کړې.

**نازنین!**

ستا کارنامه زموږ ویاړ دی او پر تا ویاړو.

هو نازنین! ستا کارنامه زموږ ویاړ دی او پر تا ویاړو.

# په سویلي اسیا کې د قدرت بدلون!

**ثناءالله عمران**

د هند او اسلامي امارت او همدارنګه د پاکستان او بنګله دېش ترمنځ د اړیکو ژورېدل په سیمه کې د سیالۍ د نوی څپرکي سیاسي محاسبه تر بل هر وخت ډېره پېچلې ښکاري.

په دې وروستیو کې لومړی په افغانستان او ورپسې په بنګله دېش کې مهم بدلونونه په سیمه په تېره بیا افغانستان او هندوستان لپاره پام وړ د ډیپلوماتیکو پرمختګونو لامل شول، په ۲۰۲۱ز کال کې سویلي آسیا د خپلې له ټولو اوږدې جګړې یعنې په افغانستان کې د متحده ایالاتو په مشرۍ د ډله‌ییز غرب د اشغال د ټغر د ټولېدو شاهده وه. همدا ډول تېر کال، په بنګله دېش کې د لومړۍ وزیري شیخ حسینې پنځلس کلنه واکمني، چې د سیمې له ټولو اوږده واکمني وه، پای ته ورسېده.

دا بدلونونه د دوو حیرانونکو ډیپلوماتیکو پرمختګونو لامل شول؛ لومړی د هند او ا.ا.ا. ترمنځ تعامل او بل هم د بنګله دېش او پاکستان تر منځ سوکه د ودې په‌حال کې اړیکې.

وروسته له هغه چې امارت په ۲۰۲۱ ز کال کې د پلازمېنې کابل ولکه تر لاسه کړه؛ هندي چارواکو له کابل سره لیده کاته تر سره کړل. په ۲۰۲۲ زکال په کابل کې په محدود ډول د هند سفارت تر پرانیستلو وروسته په ۲۰۲۴ ز کال د نومبر په میاشت کې افغان حکومت اکرام الدین کامل د هند په ممبیي کې د سرپرست کونسل په توګه وټاکه، چې دا له افغان حکومت سره د تعامل په موخه د هند لیوالتیا په ګوته کوي.

تېره میاشت د هند د بهرنیو چارو وزارت یو لوړپوړي ډیپلومات وکرم مسري د افغانستان د بهرنیو چارو له وزیر امیر خان متقي سره په متحده عربي اماراتو کې وکتل او پر امنیتي او اقتصادي مسایلو یې خبرې وکړې.

له هند سره د افغانستان د لوړې کچې تعامل ځکه د پام وړ دی،چې ګواکي طالبانو د اشغال پر مهال او له هغه وړاندې د هند په پرتله د هغه له سیال پاکستان سره ښه اړیکې درلودې، خو په افغانستان کې د جګړې په پای ته رسېدو سره د ا.ا.ا. په وړاندې د پاکستان حکومت خپل حیثیت او باور ټکنی کړل چې ورسره دوه اړخیزې اړیکې هم ترینګلې شوې.

هند د اړیکو دا ترینګلتیا په افغانستان کې د خپلو ګټو د تعقیب او تعامل لپاره ښه فرصت بولي او غواړي ډاډه شي چې د افغانستان خاوره د هغوی پر وړاندې نه بلکې او د ایران او منځنۍ آسیا سره د سوداګرۍ او ارتباطي لارو د پیاوړتیا لپاره کارول کېږي.

بلخوا تر دې مهاله د بنګله دېش د مؤقت حکومت مشر محمد یونس د پاکستان له صدراعظم شهباز شریف سره دوه ځلې کتلي او له اسلام آباد سره یې د اړیکو د پیاوړتیا غوښتنه کړې. د نومبر په میاشت کې؛ د بنګله دېش د خپلواکۍ وروسته د لومړي ځل لپاره دوو پاکستانی کارګو کښتیو چې د کراچۍ له بندر څخه یې حرکت کړی وو، د بنګله دېش په چیټاګنګ بندر کې لنګر واچاوو. ورپسې ډاکې د پاکستاني ویزو غوښتونکو لپاره د مقرراتو نرمولو اعلان وکړ چې له دې وړاندې د حسینې د حکومت پر مهال خورا سخت و.

دا د دواړو هېوادونو په اړیکو کې داسې ډراماتیک پرمختګ دی چې په ۱۹۷۱ ز کال کې د بنګله دېش د خپلواکۍ جګړې د میراث له امله د ستونزې سره مخ و.ویل کېږي چې هغه مهال د پاکستان پوځ د بنګله دېش د خپلواکۍ اخیستونکو د ځپلو په موخه د وحشیانه کړنو مرتکب شو او حتی د ډېروکارپوهانو له لوري هغه نسل وژنه وبلل شوه. له همدې امله یو شمېر بنګله دېشیان د نویو اړیکو د پراختیا هرکلی کوي، په‌داسې حال کې چې یو شمېر نور یې بیا مخالفت کوي.

د سیاسي لېږد راهیسې د دواړو هېوادونو ترمنځ له اقتصادي، کلتوري او تعلیمي اړیکو سربېره، په دفاعي او استخباراتي برخو کې هم د همکارۍ څرکونه لیدل کېږي. د روان ز کال په جنورۍ کې د دواړو هېوادونو لوړپوړو پوځي مشرانو په راولپنډۍ کې د سیمه‌ییز امنیت او د ګډو پوځي تمرینونو، روزنیزو پروګرامونو او د وسلو د سوداګرۍ د فرصتونو په اړه خبرې وکړې.همدارنګه د امان په نامه د پاکستان د کراچۍ په کلني څو اړخیز سمندري تمرین کې د بنګله دېش سمندري ځواک ګډون وکړ، خو له دې سره سره له پاکستان سره یې اړیکې او ډیپلوماټیک تعاملات چندان تاوده نه برېښي.

حسینې د خپل صدارت پر مهال له پاکستان سره د اړیکو ښه کولو پر وړاندې مقاومت کاوه، خو په تیر اګست کې هند ته د حسینې له تېښتې سره یونس د هغې خلا ډکه کړه ځکه چې هغه له پاکستان سره ملګرتیا ته لېواله برېښي، خو دا به خورا ساده توب وي چې د نوي ډیلي او اسلام آباد سره د ډاکې اړیکو ته د یوه اړخ د بایلونکي او بل ګټونکي(zero–sum) په اصطلاح کې وکتل شي.

بلخوا د چین له لوري د ګاونډیو هېوادونو(هند او جاپان) سره د کړکېچ کمولو وروستۍ هڅې، دا په ډاګه کوي چې څو بیجینګ د متحده ایالاتو سره د سیالۍ په موخه خپل شاوخوا باثباته کړي.د هند لپاره له چین سره د سرحدي تاوتریخوالي کمول د راتلوونکو اقتصادي تعاملاتو په موخه یوه اړتیا ده او د چین د توکو او خامو موادو پرته به ورته ستونزمنه وي چې په نړیوال تولیدي مرکز بدل او خپلو هیلو ته ورسېږي.

په سیمه کې دا پرمختګونه کولی شي د ځواک سیمه‌ییز انډول بدل او هند او یو شمېر نور هېوادونه دې ته اړ کړي چې په سویلي آسیا کې د خپلو ستراتېژیانو پرګماتیکه بیا ارزونه وکړي.

لنډه دا چې پاکستان له اوږدې مودې راهیسې په بېلابېلو ډګرونو کې د هند د برلاسۍ او د خپلو یو شمېر شر پسنده سیاستونو له امله په سویلي اسیا کې ځان پردی او ګوښه احساسوي او له دې سربېره په کور دننه له جدي امنیتي،سیاسي او اقتصادي ننګونو سره مخ دی.

د سیمې د جیوپولیټیک بدلونونو څخه په ځانګړي ډول په پاکستان کې، داسې ښکاري چې افغانستان ورو ورو د یادې تشې ډکولو او د سویلي اسیا په تعاملاتو کې د غوښن رول خپلولو ته ځان چمتو کوي. په سیمه کې د دوو سیالو هېوادونو له چین او هند سره د افغانستان د اړیکو پیاوړتیا به د سویلي اسیا پر جیوپولیټیک د پام وړ اغېزه ولري.

# افتتاح کارگاه کنترول کیفیت تخم‌های بذری در کابل

کارگاه کنترول کیفیت تخم‌های بذری با اشتراک مولوی صدراعظم عثمانی معین زراعت و مالداری وزارت زراعت در فارم تحقیقاتی بادام باغ کابل افتتاحگردید.
وزارت زراعت در یک خبرنامه نگاشته است که در این مراسم، مولوی صدراعظم عثمانی سخنرانی کرده و از حاضران خواست که از این برنامهٔ آموزشی بهره‌برداری مؤثر نموده و تجربه‌های خود را به دهقانان منتقل کنند.
وی همچنان تأکید کرد که تخم‌های باکیفیت و معیاری باید تولید شوند تا نیاز مردم به آرد با کیفیت برطرف گردد. ایشان اضافه کرد با تلاش‌های مشترک می‌توانیم به خودکفایی برسیم و خوشبختانه وزارت زراعت برنامه دارد تا سال آینده ۵۵ هزار متریک تخم اصلاح شده با کیفیت تهیه کند.
مولوی عثمانی از سازمان خوراک و زراعت ملل متحد و سایر نهادهای شریک در راه‌اندازی این برنامه آموزشی قدردانی نمود.
این برنامه آموزشی با همکاری سازمان خوراک و زراعت ملل متحد برگزار شده و بیش از ۱۰۰ تن از کارمندان ریاست تصدیق دهی وزارت زراعت و کارمندان شرکت امارتی و تولید تخم بذری و سازمان خوراک و زراعت ملل متحد از پنج زون کشور در آن اشتراک دارند.



# افغان اعلانات

### موضوع: تعدیل اعلان دعوت به داوطلبی.

وزارت فواید عامه، از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی پروژه ترمیمات پل درانی ولایت میدان وردگ در مسیر شاهراه کابل - کندهار و پروژه ترمیمات پل سرخ ولایت میدان وردگ در مسیر شاهراه کابل – کندهار اشتراک نموده و سافت کاپی شرطنامه و اسناد تخنیکی را از آمریت تدارکات امور ساختمانی این وزارت بدست آورده، آفرهای خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سربسته از تاریخ نشر اعلان الی ساعت (۱۰:۰۰ قبل از ظهر ) مؤرخ (۱٤۰۳/۱۲/۱٤) به ریاست تدارکات، وزارت فواید عامه، واقع ملالی وات، سرک وزارت داخله اسبق، جوار اداره ملی احصائیه و معلومات ارایه نمایند.
آفرهای ناوقت رسیده و انترنتی قابل پذیرش نمی باشد.
تضمین آفر پروژه ترمیمات پل درانی بصورت گرنتی بانک مبلغ (۸۵,۰۰۰ ) هشتاد و پنج هزار افغانی و پروژه ترمیمات پل سرخ بصورت گرانتی بانک مبلغ ((٤۱,۰۰۰ چهل و یک هزار افغانی بوده و جلسه آفرگشایی به تاریخ (۱٤۰۳/۱۲/۱٤( ساعت (۱۰:۰۰ قبل از ظهر) در تالار جلسات ریاست دفتر منزل سوم تعمیر وزارت فواید عامه تدویر میگردد.

***

### موضوع : اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسی از فقره (۲) ماده چهل وسوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده میشود، وزارت فواید عامه در نظر دارد قرارداد پروژه خریداری و نصب سیستم مکمل سولر مورد نیاز ۹ پایه ترازو های فعال در ولایت بلخ ، هرات ، نیمروز و پکتیا به اساس قرارداد بلمقطع تحت شماره تشخیصیه MOPW/1403/G-73/NCB را به شرکت تجارتی اندیشه پردیس شماره جواز شرکت ۳۲۸۷۹ آدرس– مرکز؛میدان شهر ؛وردگ به قیمت مجموعی ۲,٤۳٦,۰۸۸ دو میلیون و چهار صدو سی و شش هزارو هشتاد و هشت افغانی اعطاء نماید.
اشخاص حقیقی وحکمی که هر گونه اعتراض در زمینه داشته باشند، میتوانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به وزارت فواید عامه وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.
این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسی از فقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، د افغانستان برشنا شرکت در نظر دارد تا قرارداد ) اعمار یک باب تحویلخانه ریاست ننگرهار برشنا) دارای کود نمبر ساختمان-۱٤٤٥-داوطلبی بازملی ۰۳۳ اعلان مجدد (با شرکت ساختمانی نصیب ذهین دارنده جواز نمبر 530-02-D و با داشتن محل اصلی شرکت { چهاراهی مرستون جلال آباد ،ننگرهار} مبلغ ۱۲،۸۲۳،۲۹۸,۳دوازده میلیون هشت صدو بیست سه هزار و دو صدو نودهشت اعشاریه سه افغانی اعطا نماید.
اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست تهیه و تدارکات دافغانستان برشنا شرکت – دهمزنگ – کابل افغانستان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.
این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### دعوت به داوطلبی

د افغانستان برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی (تهیه و تدارک ۱۲ پایه کمپیوتر دسک تاپ بشمول ۱۲ عدد رم (RAM) ضرورت آمریت (MIS) ریاست تکنالوژی معلوماتی) دارای کود نمبر (دافغانستان برشنا شرکت/۱٤٤٦/داوطلبی بازملی/اجناس -۰۸۸-اعلان مجدد) اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت از طریق ویب سایت رسمی دافغانستان برشنا شرکت و یا مدیریت تدارکات اجناس بدست آورده ،آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته بروز معین به مدیریت تدارکات اجناس – ریاست تدارکات، منزل ششم تعمیر دفتر مرکزی د افغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ شهر کابل ارایه نمایند. آفر های ناوقت رسیده والکترونیکی قابل پذیرش نبوده تضمین آفر اخذ میگردد.
۱) مقدار تضمین آفر : حداقل مبلغ {۳۸,٤۰۰ سی و هشت هزار و چهار صد افغانی}
۲) جلسه آفرگشایی: ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر تاریخ ۱۲ حوت ۱٤۰۳ روز یکشنبه
۳) آدرس و محل آفر گشایی: منزل ششم، اطاق کنفرانس ریاست تدارکات.
٤) آدرس اداره : دافغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ ناحیه سوم شهرکابل
برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید.
شماره تماس: ۰۷٦۷٤۱۸۸۹۹ / ۰۷۲۹۰۰۲٤٥۰
آدرس الکترونیکی:
s.romanfaizmohammadi@dabs.af
kefayat.shirzad@dabs.af

***

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت شیرزاد تنها لمتید یک عراده موتر پلیت ۷٤۳۷۱- ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای محمد معروف فرزند محمد رمان بفروش رسانیده است.
بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند.۹۱۹٦

## افغانستان بېساري تاريخي ...

له لوري له افغانستان څخه د احتمالي ګواښونو اندېښنو په ردلو سره ویلي، هېواد کې په بشپړ دول امنیت ټینګ دی، هغه امنیت چې افغانستان په تېرو څو لسیزو کې نه دی تجربه کړی.
نوموړي زیاته کړې، اسلامي امارت د افغانستان په ټوله جغرافیه بشپړ حاکمیت لري او هیڅ ډلې او اشخاصو ته اجازه نه ورکوي چې د هېواد امنیت ګډوډ کړي. د کورنیو چارو وزارت ویاند دغه ځرګندونې سیمه کې د امنیتي ګواښونو په اړه د ملګرو ملتونو امنیت شورا ځانګړې ناستې په غبرګون کې کړې دي.

## د ایران مذهبي مشر له افغانستان ...

خبره په داسې مهال کېږي، چې د دواړو هېوادونو ډيپلوماتيکې او اقتصادي اړيکي ورځ تر بلې د پراختيا په درشل کې دي.
دا په داسې حال کې ده چې په دې وروستيو کې د اسلامي جمهوريت د بهرنيو چارو وزير عباس عراقچي کابل ته راغلی و او د اسلامي امارت له ګڼو لوړپوړو مشرانو سره يې ليده کاته وکړل.

## کندز کې د یو نیم میلیارد افغانیو په ...

مارکېټونه، له یو زر او ۵۰۰ څخه زیات دوکانونه، د تېلو یو پمپ، درې جوماتونه، سونا او نورې اړینې اسانتیاوې په پام کې نیول شوي دي.
همداراز د یاد ښارګوټي ترڅنګ به د کندوز ښار احمدولي څلورلارې څخه د چهاردرې مسیر تر درې‌لارې پورې سرک د ماسټر پلان مطابق درې سرکه د ۴۰ متره سور په لرولو سره په اساسي ډول ورغول شي.
د یاد ولایت د سوداګریزو خونې مرستیال سید جلال عثماني د دې سوداګریز ښارګوټي د چارو له پیل څخه د مننې ترڅنګ وویل، ډېر د خوشحالی ځای دی چې په کندوز ولایت کې د سپین‌زر امارتي شرکت لخوا ستره ارزښتمنه پروژه پلي کېږي.
د یادولو وړ ده، چې په کندوز ولایت کې د سپین‌زر امارتي شرکت لخوا د دغه سوداګریز او ودانیز ښارګوټي چارې په‌داسې حال کې پیلېږي، چې څه موده وړاندې د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله د فرمان په اساس د ابدان په دښته کې د صنعتي پارکونو لپاره ۱۰ زره جریبه ځمکه ځانګړې شوې وه.

## له کورنیو هوایي شرکتونو سره ...

سږکال هم د تېرو کلونو په څېر د حج دیني او ملي پروسه د الله تعالی په فضل او نصرت سره په ښه توګه پرمخ روانه ده.
نوموړي زیاته کړه، دواړه داخلي هوایي شرکتونه غواړي په دیني او ملي جذبې سره د حج دغه ملي پروسه مخته یوسي، ترڅو په دغه ستره دیني او ملي پروسه کې خپل مسوولیت په ښه ډول ترسره کړي.
همداشان د ارشاد، حج او اوقافو وزیر وویل: د افغانستان اسلامي امارت هوډ لري چې افغانستان په مختلفو برخو کې په ځان بسیا کړي، چې ښه بېلګه یې د حج په دغه ملي پروسه کورنیو هوایي شرکتونو ته د حاجیانو لېږد رالېږد دی..
ورپسې د اریانا افغان او کام ایر هوایي شرکتونو مسوولینو د ارشاد، حج او اوقافو وزارت له هلو ځلو او منظمو پروګرامونو څخه ستاینه وکړه او له خپل لوري یې د هر ډول ښه چوپړ وړاندې کولو ژمنه وکړه او ویې ویل هیله لرو چې خپلو ټولو امکاناتو او شته ظرفیتونو ته په کتو حاجیانو ته هر ډول اسانتیاوې برابروي.

## مبارزه با گران‌فروشان ادویه ...

ننگرهار، شناسایی شدند.
وزارت صحت عامه افزوده که در نتیجه این بررسی‌ها مقداری از ادویه تاریخ‌گذشته نیز جمع‌آوری شده است.
گفتنی‌است که نظارت از بخش‌های عرضه کننده خدمات صحی و ادویه‌فروشی‌ها در کشور همچنان ادامه دارد.

## جوزجان کې د ۲ کورنیو ...

مخې هغوی یو بل ته ورغاړې وېستل، چې په همدې سره یې یاده لس کلنه دُښمني په دوستۍ بدله شوه.
په ورته مهال د بلخ ولایت په چهار بولک ولسوالۍ کې د یوې ترافیکي پېښې له امله د دوو کورنیو ترمنځ راپورته شوې شخړه، چې یو کس پکې وژل شوی و حل او دواړه خواوې د یاد ولایت د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو ریاست د مسولینو او قومي سپین ږیرو له لورې د وروری په تغر سره کېناستې.
همداراز د دایکندي ولایت په هجدي سیمه کې د یوې کورنۍ د څو غړو ترمنځ د میراث پر سر راپورته شوې شخړه د دې ولایت د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو آمریت آمر ځایي اوسېدونکو او علماوو په منځګړیتوب په داسې ډول حل شوه، چې د کورنۍ هر غړي ته د شریعت په رڼا کې خپل حق ورسېده او د خوښۍ ژوند یې پیل کړ.

## فراه کې ترافیکي پېښې ۸ تنو ...

نور ټپیان شوي. د فراه د پشتکوه ولسوال مولوي عبدالناصر نوراني ویلي چې دا پېښه شیخ ابو نصر فراهي بندر ته نږدې د دوو فېلډر موټرونو د ټکر په سبب رامنځته شوې ده.
ښاغلي نوراني ویلي چې ټپیان د درملنې په موخه د فراه ولایتي روغتون ته لېږدول شوي.
د فراه مسوولینو ددې پېښې علت نه دی په ډاګه کړی.

## از غصب ۱۲ هزار جریب زمین امارتی ...

یک ماه گذشته در همکاری با نیروهای امنیتی ولایت کندهار در مربوطات ۱۹ ولسوالی این وزارت از غصب نجات داده شده است.
در خبرنامه آمده که این مقدار زمین در نتیجه بررسی دوسیه‌های ۸۶ هزار و ۳۹۶ جریب زمین امارتی شناسایی شده است.
این بررسی‌ها از سوی هیات تخنیکی تشخیص، تثبیت و استرداد زمین‌های غصب‌شده امارتی از غصب نجات داده شده است.
این در حالی است که روند بررسی زمین‌های غصب‌شده امارتی در سراسر کشور جریان دارد.

## د مغرضو رسنیو مذبوحانه تبلیغات ...

سره د وصل په نقطه کې موقعیت لري، د مځکې لاندې ډول ډول د قیمتي کانو، سرو زرو، تېلو، ګازو، مالګې او نورو قېمتي ډبرو بې شمېره معدنونه لري، خو دا نړیوال استکبار دی چې افغانان نه پرېږدي له خپلو ذخایرو ګټه واخلي. په دې وروستیو کې ځینو هېوادونو واقعیتونو درک کړي او غواړي له افغان حکومت سره د تعامل له لارې خپلې اړیکې پیاوړې کړي د بېلګې په توګه، چین، روسیې، ایران،قطر، هندوستان او ترکیې ته د اسلامي امارت استازي ورپېژندل شوي او سفارتي کارونه مخ ته وړي او زیات شمېر نور هېوادونه هم لیوال دي چې د تعامل له لارې د اسلامي امارت سفارتي استازي په خپلو هېوادونو کې ومني او ډېر ژر به په دې برخه کې د نورو پرمختګونو شاهدان هم واوسو.

## قرارداد سرک اتصالی لوگر ...

دو بخش ۱۷.۴ و ۱۴.۲ کیلومتر در دو مرحله ساخته می‌شود.
او تاکید کرده که ساخت سرک وصل کننده ولایت میدان‌وردک با ولایت لوگر ۱۶ ماه زمان خواهد برد.
گفتنی‌است که با تکمیل کار سرک متذکره مشکلات باشندگان ولایت‌های لوگر و میدان‌وردک از رهگذر رفت‌وآمد حل شده و سهولت‌های زیاد برای آنان فراهم خواهد شد.

## د مالیې وزیر کونړ ...

او نوي کابل بانک د ولایتي څانګو له چارو څخه د لیدني پرمهال، د عوایدو راټولولو بهیر، په لګښتونو کې د سپما اصل په نظر کې نیول او د بانکي خدمتونو چارې له نږدې وارزولې او د چارو د لا ښه والي په موخه یې مسولینو ته اړینې سپارښتنې وکړې.
همدارنګه د مالیې وزیر او مل پلاوي د ولایتي مسولینو پرمختګونه ستایلي، د هغوی ستونزې یې واورېدلې او شته ستونزو ته د رسېدو په موخه د اصولي اجراآتو بشپړ ډاډ ورکړی دی.
د یادونې وړ ده، چې د کونړ ولایت مستوفیت په روان مالي کال کې د غیر ضروري لګښتونو مخنیوی کړی دی او ټاکل شوي عوایدي هدف یې له پلان سره سم، په ښه ډول ترلاسه کېږي.

## پنځو ولایتونو کې ۵۱ زره کیلو ګرامه قاچاقي ...

ګرامه وچې شیدې، ۲۷۷ کیلو ګرامه البسه، ۱۶۰ کیلو ګرامه د زنګ ضد، ۲۵۵ کیلو ګرامه پلاستیکي پیپونه او ۷۰ کیلو ګرامه لواشک هم نیول شوي دي.
د یاد وزارت مسوولین وایي، چې نیول شوي توکي او تورن کسان د نورو اجراآتو په پار اړوند ګمرکونو ته سپارل شوي دي.

## له لوګر څخه شاوخوا یو میلیون ټنه کرنیز ...

د لوګر د سوداګرۍ او پانګونې خونې رییس له پانګوالو غوښتي چې له شته فرصتونو څخه پوره ګټه واخلي.
دا په داسې حال کې ده چې سږ کال په لوګر کې د تازه مېوو او نورو کرنیزو محصولاتو په تولید کې د پام وړ زیاتوالی راغلی دی.

Shariat Daily

**Shariat**
**Published by**
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

**شریعت**
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت بریښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶ /۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Monday 10 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 679


# قرارداد سرک اتصالی لوگر – میدان‌وردک امضا شد



وزارت فواید عامه از امضای قرارداد ساخت سرک اتصالی ولایت‌های لوگر – میدان‌وردک به ارزش ۷۱۳ میلیون افغانی خبر می‌دهد.

محمد اشرف حق‌شناس، سخنگوی وزارت فواید عامه با نشر خبرنامه‌ای از امضای این قرارداد خبر داده است.

به گفته آقای حق‌شناس، قرارداد سرک اتصالی لوگر – میدان‌وردک به طول ۳۱.۶ کیلومتر میان ملا محمد عیسی ثانی، سرپرست وزارت فواید عامه و مسئولان شرکت‌های قرارداد کننده امضا شده است. در خبرنامه آمده که این سرک قرار است توسط دو شرکت سرک‌سازی ساخته شود.

سخنگوی وزارت فواید عامه افزوده که سرک یادشده در ... ص۳

## د عامې روغتیا وزیر د فراه روغتیایي بهیر وکوت



د عامې روغتیا وزیر مولوي نور جلال جلالي فراه ولایت ته د سفر په ترځ کې د یاد ولایــت د ولایتي روغتون څخه لیدنه‌وکړه.

په دغــه لیدنه کې چې د یوه تخنیکي پلاوي په ملتیا ترســره شــو، د عامې روغتیا وزیر مولوي نور جلال جلالي د یاد روغتون ټولو څانګو څخه لیدنه کړې، ســتونزې یې یاداشت او د حل بشپړ ډاډ یې څرګند کړی ده.

مولوي نور جلال جلالــي همداراز روغتیایي کارکوونکو ته د خپلې وینا په ترځ کې په یاد ولایت کې د ولسوالیو کچې عمومــي روغتونونو جوړېدو، روغتیایي کارکوونکو د ظرفیت لوړولو او د روغتیایي خدماتــو پراخېدو ډاډ ورکړی. نوموړي له هغوی غوښــتي، چې شــته امکاناتو څخه په پوره ګټې اخیستنې ناروغانو ته معیاري خدمات وړاندې او غوره درملنه یې وکړي.

## د مالیې وزیر کونړ ته تللی

د مالیــې وزیر ملا محمــد ناصر اخونــد د خپلــو رســمي ولایتي ســفرونو په لړ کې د دغه وزارت د مالي او اداري سلاکار او د عوایدو لوی ریاســت د حقوقي خدمتونو او پالیســی د رییس پــه ملتیا کونړ ولایت ته سفر وکړ.

مــلا محمــد ناصر اخونــد د دغه ســفر په لړ کې د کونــړ ولایت له مستوفیت، د ملي بانک ... ۳مخ

## د کندز له روغتیا ریاست سره د طبي او غیرطبي توکو مرسته شوې



د بلخ عامې روغتیا ریاست د کندز له عامې روغتیا ریاســت سره د ۳۴ میلیونه ۵ لکه ۶ زره او ۳۰۰ افغانیو پــه ارزښــت د طبــي او غیرطبي وسایلو مرسته کړې ده.

د بلخ د عامې روغتیا ریاست وایاند ویلي، چې په یادو طبي او غیرطبي وســایلو کــې د عملیاتــو میزونه، د عملیاتونــو ســیټونه، د عملیاتــو څراغونه، د وینې معایناتو ماشینونه، د التراســوند ماشــین، سکشــن ماشینونه، د درملو ساتلو یخچالونه، د ناروغانو چپرکټونه، مایکروپیت او یو شمېر نور شامل دي.

نوموړي د دغو مرستو موخه، د کندز په روغتیایي مرکزونو کې د خدمتونو د کچې لوړول او د ناروغانو لپاره د ښــه روغتیایي چوپړتیاوو وړاندې کول ښودلي دي.

## د بادغیس ښاریانو ته د پاکو اوبو اسانتیاوې برابرېږي




د بادغیس ســیمه ییزو مسئولینو په دغه ولایــت کې د اوبو رســولو د دریېــم فاز چارو د پیــل کېدو خبر ورکړی دی.

د قلعه نو ښار مسئولینو وویل، چې د دغه فاز په بشــپړېدو سره به اوبه اصلــي ذخېرو ته ورســېږي او ډېر ژر به ښــاریانو ته د اوبو اسانتیاوې برابرې شي.

نوموړي زیاتــه کړه، چې دا مهال ۵ زره ۴۵۰ کورنۍ له دې شبکې ګټه پورته کوي.

مولوي زاهد له خلکو وغوښتل چې خپل پورونه پرې کړي.

چارواکو ټینګار وکــړ چې د اوبو د مصرف په سم مدیریت کې د خلکو همکاري د اوبو د سرچینو په ساتنه کې اساسي رول لري.

## پنځو ولایتونو کې ۵۱ زره کیلو ګرامه قاچاقي توکي نیول شوي

د مالیــې وزارت د هېــواد په پنځو ولایتونو کې د شاوخوا ۵۱ زره کیلو ګرامــه د قاچاقي توکو له نیول کیدو خبر ورکوي.

د یــاد وزارت د خبرپاڼې له مخې، دغه توکې د ګمرکونو لوی ریاســت د ګرځنده څارنې کارکوونکو د تېرې اوونۍ په لړ کې د نیمروز، کندهار، فراه، ننګرهار او د هلمند ولایتونو په بېلابېلو سیمو کې نیول شوي دي.

پــه خبرپاڼه کــې راغلــي، چې په نیول شــویو توکو کې ۱۶ زره ۶۹۰ کیلــو ګرامــه روب، ۸ زره ۸۸۷ کیلو ګرامــه ګوړه، ۳ زره ۲۹۴ کیلو ګرامه چاکلیــټ، ۱۱ زره ۲۱۰ کیلو ګرامه خام نخود، ۹۰۰ کیلو ګرامه خوراکي مالګــه، ۳۹۲ کیلو ګرامه مکرونــي او ۲۳۷ ګرامــه ملایــي شامل دي.

دغــه راز ۲۶۴ کیلو ګرامــه لوبیا، ۲۳۶ کیلو ګرامه درمل، ۲۴۰ کیلو ګرامه مربا، ۲۱۰ کیلو ... ۳مخ

## له لوګر څخه شاوخوا یو میلیون ټنه کرنیز توکي نورو هېوادونو ته صادر شوي

د لوګر د ســوداګرۍ او پانګونې خونې مســوولینو ویلــي چې د روان ۱۴۰۳ کال پــه لــړ کې له دې ولایــت څخه باندې ۱.۱ میلیــون ټنه بېلابېــل کرنیز توکي نــورو هېوادونو ته صادر شــوي دي.



په صادرو شــویو توکو کې مڼې، انګــور، زردالو، بادام، هندواڼې، کچالــو، پیاز، رومــي بانجان او نورې مېوې سابه شامل دي.

د ولایتي مسوولینو له قوله، ددې محصولاتــو کچــه ۶۸ میلیونو افغانیو ته رســېده، چــې د مرکز پــل علم په ګــډون لــه بېلابېلو ولسوالیو راټول شوي وو. ۳مخ




## رياض: اشغالګر نه پوهېږي چې فلسطینیان له فلسطین سره څه ډول تړاو لري

سعودي عربستان د صهیونېست رژیم د لومړي وزیر بنیامین نتنیاهو وروستیو څرګندونو ته چې فلسطین دې په سعودي عربستان کې جوړ شي، په کلکه رد کړې دي. د ســعودي د بهرنیو چــارو وزارت په یوې خبرپاڼه کې ویلي، اشــغالګر په دې نه پوهېږي چې فلسطیني وروڼو ته د فلسیطن جغرافیه څه ده او له دې خاورې سره دوی کوم تاریخي، قانوني او کلتوري تړاو لري.

ســعودي دغه څرګندونې وروسته له هغې کوي چې نتنیاهو په یوه مرکه کې ویلي و، چې سعودي عربســتان دې یو فلسطین هېواد په خپلو شاړو دښتو کې جوړ کړي.



## د صهیونست رژیم پوځ له نتساریم سیمې پر شا شوی

د نړیوالو رســنیو د راپورونو له مخې، د اسراییلو د صهیونېست رژیم پوځ د نتساریم له سیمې بشپړ شاتګ کړی دی. د حماس جهادي غورځنګ د صهیونېست رژیم دغه شــاتګ د دوی د مقاومت کمزورتیا او د فلسطیني ولــس د صبر او زغم پایله بللې ده. د نتســاریم ســیمه د غزې تړانګې په منځنــۍ برخه کې موقیعت لري او د شــمالي او جنوبــي غزې ترمنځ د اړیکو لپاره یو ستراتیژیک اهمیت لري.

## لبنان کې نوی حکومت اعلان شو

د لبنان ولسمشــر جــوزف عون له څه باندې دوه کلــن موقت حکومت وروســته د نواف ســلام په مشــرۍ نوی حکومت اعلان کړ، چې ۲۴ وزیــران لــري. د لبنان ولسمشــرۍ مانۍ پــرون اعلان کــړی، چې د سرپرســت حکومت اســتعفا یې منلې او د نواف ســلام په مشري یې د ۲۴ وزیرانــو نوې کابینــه ټاکلې ده. دا له ۲۰۲۲ کال راهیســې د هېواد لومړی بشــپړ حکومت دی. اوس‌مهال دا کابینــه د راتلونکي حکومت د کړنو او لومړیتوبونو په تړاو طرحې او مســودې ترتیبوي او وروســته به بیا د بشــپړ واک په موخه له پارلمان څخه د باور رایې ترلاســه کړي. د لبنان نوي لومړي وزیر نواف سلام ویلي، چې حکومت به یې اقتصادي اصلاحات راولي، تر څو هېواد د بیارغونې امکاناتو ته لاسرســی ومومي او له وروستي جنګ وروســته د پانګوالو د جلب زمینه برابره شي.

د لبنان له سیاســي ګوندونو ســره له څه باندې درېیو اوونیو سلا مشورو وروسته د دې هېواد نوی حکومت اعلان شو



## ټرمپ او پوتین ټیلفوني خبرې کړې

د امریکا ولسمشــر ډونالډ ټرمپ له واشنګټن پوســټ سره په مرکه کې ویلي، چې د روســیې له ولسمشــر ولادیمیر پوتین سره یې د اوکراین په اړه ټلیفوني خبر کړې دي. ټرمــپ ویلي، چې پوتین د رواني جګړې له قربانیانو ژوره اندېښــنه ښــودلې او زیاته کړې یې ده، چې نه غواړې په دې جګړه کې نور کسان ووژل شــي. د یادونې وړ ده، چې په یاده مرکه کې ټرمپ له پوتین ســره د څو ځلو اړیکو د نیولو له معلوماتو شریکولو ډډه کړې ده.